# دکتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| دکتاب نوم | وهابي څوک دی ؟ |
| ليکونکی | مولوي محمد قاسم (انقيادي) |
| گرځنده شمېره : | ۰۷۷۳۰۴۳۴۱۸ |
| سموونکی | ارشاد محمود |
| کمپوزاوډيزاين : | خليل احمد (ثارن). |
| دچاپ کال | ۱۳۸۷ لمريز |
| دچاپ شمېر | زر ټوکه |
| خپروونکی | په خپله راټولوونکی |
| خپرندوی | احمدشاهي کتب خانه _کابل بازارکندهار |
| گرځنده شمېره : | ۰۷۰۰۳۲۱۴۷۹ |
| دپښتی طرح | احمد رشاد |

## فهرست

عنوان | زرجمد احمد | مخ

# دسـرخبـري

په عمومي صورت په اوس وخت کـي دخلکو پام یوازي دعصري زده کړو خواته دی او غـواړي چي ځـان دکمپیوټر له نړۍ سره بلـد کړي نو ښکاره خبره ده چي دشریعت زده کړو ته یا خـو پام نه کوي او یا هـم وخت نه ورته لري ، په دې اسـاس دشـرعـي علومو پـه اړه که ورځخه وپوښتل سي نو معلومات نه لري او که کومه نوې موضوع یاخبره واوري په داسي حال کي چي پخوا یې نـه وي اوریدلې نـو سمدستي پرهغه چا باندي دوهابي حکم کوي حال داچي دی به خپله وهابي نه پېژني .

ښه خبره داده چي لومړی باید خپل ځان دشرعي علومـو سره پوره بلد کړو او که هغه نه وي نو پر چا باندي بېځایه دوهابي او یاکوم بل مذهب دپیرو حکم ونه کړو.

په دې کوچنۍ رساله کي مـا دوهابیت په اړه څـه نـه څـه بیان او دهغوی صفات لیکلي دي ، خـدای (ج) دي وکـړي چي دمسلمانانو داستفادې وړ وګرځي .

په دې هیله چي ګټه ورځخه واخیستل سي .

مولوي محمد قاسم ((انقیادي))

# ایـا وهـابـیان پـېژنـئ ؟؟؟

په اسـلامي امت کـي خامخا داسـي خلـک پیدا کیږي چي دټول امت څخه په جلا لاره روان وي او ورو ورو یوه غټه ډلـه ورڅخه جوړه سي ځکه چي حضرت رسول اکرم (ص) فرمایلي دي چي :
زما امـت بـه پر ۷۳ ډلو باندي وویشل سـي او ټول به په دوږخ کي وي خو یوه ډله به په جنـت کـي وي او هغه (ناجـیه ) ډله ده چي درسول اکرم (ص) سنت پر ځای کوي او ټول یو جماعت وي .

څـرنګه چـي دوهابیـانو ډلـه لـه ډېـري پخوا زمـانې څخه ددینـي عالمانو پـه جامه کـي ځانونه ښکاره کوي او ډېری هغه کسان چي نه دیني او نه عصري زده کړه لري له خپلي لاري څخه بـې لاري کـوي ، پـه اصل کي دغـه ډلــه خلـک دابلـیس دنمائنده ګانو په صفت دخلـکو پــه منځ کي دګمراهی تخم پـاشي او خلـکو ته دغلـطي لاري ښوونه ورکوي ، دداسي عالمانو په هکله حضرت رسول اکرم (ص) فرمایلي دي چي :
زه دهغه لېوه له خرابی څخه چي په بې چوپانه رمـه ګډ سي دومره نه بېرېږم لکه یوبدعالم چي زما په امت کي پیدا سي .

# وهابي څوک دی ؟؟؟

څنګه چي دلته دوهابيانو دوهابيت او ددوی دتبليغ په اړه بحث کيږي نوغواړم چي ددوی دتاريخ او عقايدو په اړه څه نه څه درته وړاندي کړم.

دغه ډله چي دتيميه محمد بن عبدالوهاب مقلدين دي دهجرت په ۷۰۰ کال کي خلکوته خپل ځانونه ښکاره کړل خو زموږ ګران هيواد افغانستان ته يې په ۱۳۸۵ کال کي پوره لاره پيدا کړه ، سره له دې چي ديني عالمانو خپلو عواموته ددې ډلي دعقايدو په اړه معلومات ورکړل خو بيا هم دغه ډله وتوانېدل چي يو څو دګوتو په شمار خلک خپل کړي او په خپله عقيده باندي يې په بشپړ توګه وپوهوي .

له دې ډلي خلکو سره په ډېرو مجالسو کي زموږ ديني عالمانو بحثونه وکړل ، يو دبل په مقابل کي يې دلايل سره وويل چي بالاخره دغه منافقه ډله ملامته کړل سو ل او وعده يې وکړه چي بيا به موږ تبليغ نه کوو خو پر خپله وعده باندي يې وفاونه کړه او څو وخت وروسته يې بيا هم خپلو تبليغاتو ته ادامه ورکړه چي دا هم دمنافقت ستره علامه بلل کيږي .

ددوی دمنافقت يوه بله علامه داده چي هر وخت خپل ځانونه په جلا جلا نومونو خلکو ته ورپېژني لکه : اهل حديث ، اهل سنت ، غيرمقلدين، موحدين او کله بيا دحنيفيت اوحنبليت جامه په تن کوي خو دوی په دغه نومونو کي هم درواغجن دي او په دغه ټولو کي ديوه عقيده هم نه لري او نه يې مني .

۱ ـ حضرت رسول اکرم (ص) په يوه حديث شريف کي فرمايلي دي : هر څوک چي په هره جامه کي مړ سي نو داخرت په ورځ کي به په هغه جامه کي راپورته سي .

اهل حدیث ددې حدیث شریف ترجمه داسي کوي:
هرڅوک چي په هر ډول کالو کي مړسي نو داخرت په ورځ به په هغه ډول کالو کي راپورته کيږي.

اهـل سنت والجماعت ددې حدیث شریف ترجمه داسي کوي: هر څوک چي په هره ډله کي مړسي نو داخرت په ورځ به په هغه ډله کي راپورته کيږي په پورته حدیث شریف کي داهل حدیث او اهل سنت والجماعت تر منځ ډېر لږ توپير سته او هغه د (تاويل) موضوع ده.

اهل حديث دحديث شريف ظاهر ته گوري خو اهل سنت والجماعت په حديث شريف کي تاويل کوي.
داچي وهابيان وايي چي موږ اهل حدیث یا اهل سنت والجماعت يو نو درواغ وايي ځکه ددې دوو ډلو څخه ديوې ډلي څخه هم نه دي.
۲ ـ غير مقلدين: داچي وهابيان خپل ځانونه غير مقلدين خلکو ته وربېژني دا دليل وړاندي کوي چي موږ يوازي په قرآن کريم او حديث شريف باندي عمل کوو، خو داخبره يې هم غلطه ده ځکه چي دوی دتيميه او محمد بن عبدالوهاب کلک تقليد (پېښې) کوي.
۳ ـ موحدين: همدارنگه دوی ځانونه دموحدينو ډله بولي چي ددې نامه معنی داده چي زموږ څخه پرته نور ټول درسول الله (ص) امت مشرکان دي، که فکر وسي نو دا خبره هيڅ امکان نه لري چي ټول امت دي مشرکان سي اويوازي دتيميه اومحمدبن عبدالوهاب ډله دي کلک مسلمانان وي.

# دوهابيانو دغلطو عقايدو يوڅو مثلونه

- درسول الله (ص) پـر ټول امت باندي بد او لعنت وايي.
- دڅلور وطريقو څخه انکار کوي.
- دڅلورو مذاهبو او مجتهدينو له تقليد څخه انکار کوي.
- داولياء کرامو (رح) دکرامت څخه انکار کوي.
- داولياؤ او روحانينو (رح) څخه کومک غوښتل شرک بولي.
- دمړو لپاره خيرات ورکول بدعت بولي.
- درسول الله (ص) اونورو انبياؤ (ع) زيارت ته سفرکول شرک اوحرام بولي.
- دانبياؤ (ع) او اولياؤ (ع) پر ارواح باندي توسل حرام او شرک بولي.
- امکان سته چي خداى (ج) دي دروا غ ووايي ، نعوذ بالله من ذالک.
- خداى پاک په يوه طرف يا يو جهت کي نه ګڼل ګمراهي او بدعت بولي.

ايضاح الحق، تصنيف مولوي اسمعيل ص ۲۴ ـ هيان الايمان ، تصنيف شهود الحق ص ۵

- دخداى تعالى ذاتي صفات حادث يعني نوي بولي. اقامت البرهان ص ۷
- دځمکي او اسمانونو له پيدا ايښت څخه پخوا خداى (ج) په هوا کي و.

فتاواى محمديه ص ۲۳

- رسول اکرم (ص) دټولو انبياؤ (ع) خاتم نه بولي جامع الشواهد ص ۲_۱۲
- ټول انبياء (ع) داحکامو په تبليغ کي معصوم نه بولي. جامع الشواهد ص ۱۲
- درسول اکـرم (ص) تعظيم دخپـل مشر ورور پـه اندازه په کار بولي او تردې زيات يې په کار نه بولي. تقويه الايمان ص ۲۰
- رسول اکرم (ص) په قبر کي ژوندى نه بولي بلکي مړى يې بولي او وايي مړى خاوري دى. تقويه الايمان ص ۲۵

# وهابي څوک دی ؟؟؟

◄ خدای پاک پر عرش ناست دی او پښې یې کښته راځړولي دي او چوکی یې چغ چغ کوي .وحيدالزمان داية الكرسي شريفي په ترجمه کي ويلي دي

◄ دانبياؤ(ع) او اولياؤ(رح) زيارتو ته سفر کول شرک بولي ځکه چي د دوی په اندداداسي معنی لري لکه څوک چي بتانو ته ورځي.تقويه الايمان ص۹۴

◄ دخدای تعالی په ښوونه دعلم الغيب عقيده درسول الله (ص) په خوله بدکار بولي . تقويه الايمان ص۲۲

◄ انبياء(ع) او اوليا(رح) بيکاره خلک دي هيڅ کار نه لري .تقويه الايمان ص۱۵

◄ انبيا(ع) او اوليا(رح) هيڅ قدرت نه لري او نه څه خبره اوري. تقويه الايمان ص۲۳_۲۹

◄ دمحمد(ص) په مثل بل نبي پيدا کېدل ممکن بولي . تقويه الايمان

◄ انبياء(ع) او اوليا(رح) شفاعت کوونکي ګڼل شرک بولي. تقويه الايمان ص۲

◄ داوسنی زمانې ټول خلک کافران بولي. تقويه الايمان ص۴۵

◄ دفقهي کتابونو په لوستلوسړی مشرک بولي اوبايدوسوځول سي.غسلين

◄ دانبيا(ع) او اولياؤ(رح) زيارتونه دبتانو په مثل بولي.هدايه الرسايل ص۲۰۸

◄ لاندي خبري کفر،شرک او بدعت بولي :

- ديوه مذهب پيروي کول .
- دمولودشريف وظيفه کول .
- دشيخ عبدالقادر جيلاني وظيفه کول.
- دمړي اسقاط ګرځول.

لوامع الانوار ص ۸۰
براهين قاطعيه ص ۴۸
شپږ فتوای د عبدالجبار

◄ درسول الله (ص) زيارت ته په تعظيم درېدل شرک بولي. تقويه الايمان ص۲۴

◄ دنقشبندي،قادري او چشتي خاندان ټول ګمراهان بولي.تذکيرالاخوان ص۷

◄ دتعويذ په غاړه کول يا پريوځای غوټه کول شرک بولي. تذکيرالاخوان ص۷

# دمحمد بن عبدالوهاب ژوند لیک

محمد بن عبدالوهاب دعبدالوهاب زوی ، دهجرت په (۱۱۱۱) کال کي زېږېدلی دی ، له ۹۵ کالو ژوند کولو څخه وروسته دهجرت په ۱۲۰۲ کال کي مړ سو.
نوموړی دبني تمیمو څخه ؤ چي ابتدایي زده کړه یې هم په مدینه منوره کي پیل کړه او کله کله به مکې معظمې ته په سفر ولاړی او هلته یې هم له مختلفو استادانو څخه زده کړه کړې ده ، په مدینه منوره کي دنوموړي استادان شیخ محمد بن سلیمان الکردي الشافعي او شیخ احمد حیاة السفیدي الحنفي وه چي هغوی دده په گمراهي باندي پوهیدل او خلکو ته یې ویل چي له دې سړي څخه به ډېر گمراه جوړسي او ډېر خلک به نور هم گمراهان کړي ، دنوموړي پلار عبدالوهاب ډېر صالح انسان ؤ ، هغه به هم دده ډېر بد ویل او خلک به یې دنوموړي له بدۍ څخه خبرول.
همدارنگه دده ورور شیخ سلیمان (رح) ډېر بد ورباندي ویل ، دده دبدۍ او خرابي عقیدې دروښانه کولو او دخلکو دخبرتیا لپاره یې یوه رساله

ورباندي ولیکل چي هغه رساله تر اوسه پوري په ټوله اسلامي نړۍ کي نشر او خپره ده .

دهجرت ۱۱۴۳ کال تېر سوی ؤ محمد بن عبدالوهاب وغوښتل چي خپله فاسده عقیده په نوروخلکوباندي ومني، دلومړي ځل لپاره دمدینې منورې دشرق خواته ولاړی او هلته یې خلکو ته دخپلي عقیدې اظهار وکړ ، دغه ځای ته ځکه ولاړ چي هلته خلکو چندان زده کړه نه وه کړې نو خلکو دخپلي ناپوهۍ له امله دېر ژر دده عقیده ورسره ومنل .

دمحمد بن عبدالوهاب هیله داوه چي د درعیې امیر محمد بن مسعود دخپل ځان تابع او هم مسلک کړي او دمحمد بن مسعود هیله داوه چي پاچاهي یې پراخه سي . محمدبن مسعود دمحمدبن عبدالوهاب متابعت وکړ او خپل ټول رعیت یې دنوموړي دعقیدې په قبلولو باندي امر کړ، په دې اساس ددعوت سلسلې جریان پیدا کړ، کور، کلی، قبیله دنوموړي په فاسده عقیده کي داخلېدل اودغه ډله مخ په ترقي روانه سوه.

# دوهابیت تاسیس او مؤسس

دلومړي ځل لپاره چې یې دټولو اهل سنتو پر خلاف فاسد او باطل عقاید ښکاره کړل او دڅلورو مذاهبو څخه مخالف اصول یې کیښودل هغه ابن تیمیه دی چې خپل پیروان ورته شیخ الاسلام وایي.

مولانا عبدالحی (رح) په فوائد بهیه صـ ۱۵ کي لیکلي دي : ابو العباس احمد بن عبد الحلیم بن عبد السلام ابن تیمیه یې نسبي سلسله ده، نوموړی دهجرت په ۶۶۱ کال کي زېږېدلی دی او دهجرت په ۷۲۸ کال د ۷۷ کالو په عمر یې وفات کړیدی.

علامه تقي الدین سبکي (رح) علي بن عبد الکافي چې په ۷۵۶ کال کي وفات سوی دی دنوموړي هم عصرؤ.

کله چې ابن تیمیه دنیا ته راغی داسي فاسد او باطل عقاید یې له ځانه سره راوړل چي هیڅ مسلمان ته دقبول وړ نه وه او له داسي مسئلو څخه یې انکار کاوه چې دټولو مسلمانانو په اتفاق حق او ثابتي وې نو ځکه په ټولو مسلمانانو کي په بد انسان سره مشهور سو.

# وهابي څوک دي ؟؟؟

مولوي عبدالحکیم (رح) په شرح العقاید جلالي کي لیکلي دي چي :د تیمیه سره دده پر عقایدو باندي په ۷۰۵ کال مجلس جوړ سو ، د بحث څخه وروسته ملامت سو او قاضي القضات زین الدین السبکي المالکي (رح) دده د بندي کولو حکم صادر کړ ، نوموړی د دغه حکم پر اساس بندي سو او په ټول دمشق کي اعلان وسو چي که هر څوک دده دعقایدو پیروي کوي د هغه سري وینه او مال مباح ده ـ مرية الجنان .

تر دوه کاله بند تېرولو څخه وروسته يې توبه وکښل او ځان يې داشعري مذهب پیرو وباله نو له بند څخه خوشي سو . (حاشیه نبراس ص ۱۱۹ )

د نوموړي د عصر علماؤ دده دعقیدې په ابطال کي ډیره هڅه وکړه او دی يې د دوهم ځل لپاره بیا ونیوی او د مصر مدرسې ته يې راوست چي هلته ډېر غټ علماء او مفتیان سره جمع سوي وو ، هغه يې بیا ملامت کړ او دوخت اسلامي پاچا حکم صادر کړ چي داسي اعلان دي وسې چي دابن تیمیه عقیده د اجماع څخه خلاف ده او هر چا که دابن تیمیه عقیده له ځانه سره ساتل نو سخت عذاب به ورکړل سي .

له دې بحث او اعلامیې څخه وروروسته دیو څه وخت لپاره نوموړی پټ و خو وروسته يې داولیاؤ په سپک والي خوله پوري کړه اودرسول الله (ص) په توسل باندي منکر سو ، دوخت علماؤ بیا دنوموړي دبندي کولو حکم صادر کړ او بیا بندي سو تر څو دناصریه حکومت په دوران کي يې توبه وکښل او له بند څخه دخوشي کیدو سره سم شام ته ولاړ او هلته يې بیا دخپلي عقیدې په پلي کولو سره پیل وکړ ، یو ځل بیا ددمشق په بندي خانه کي بندي سو او اسلامي حکومت بیا حکم صادر کړ چي هر څوک چي دابن تیمیه په عقیده وي ويني تويول يې مباح او حلال دي .

# دوهـابيانو سيـاسـت

دمحمد بن عبدالوهـاب نجدي دلارښووني سره سم وهابيانو له پخوا څخه داسي فکر کاوه چي زموږ عقيده به په اطرافي سيمو کي ښه وچليږي ځکه چي هغه خلک دشرعي مسايلو سره ښه بلـدتـيا نه لري ، بله خبره داده چي اطرافي خلک دخپلي ناپوهـی لـه امله د دلايلو پـرځای جنګ ته اماده دي او همدارنګه دقوم پر بنسټ چي کـه چيري په يـوه قـوم کي په يوه نفر کـي دوهابي عقيدې پيداسي نو ډېر خلک دهمدې قوميت پـه اساس همدغه دوهابيت عقيده قبلوي .

د دوی دغه سياست په ډېرو سيمو کي تجربه سويدی او په ډېر برياليتوب سره دوی خپلي موخي ته رسيدلي .

دوهـم سيـاسـت يـې دادی چـي دوی خپلو پيروانـوته وايي چي زموږ څخه پرته نور ټول خلک مشرکان دي ، د دوی وينـه تـويـول روا ده او مالونه يې غنيمت دي او ډېره هڅه کوي چي ديني عالمان ، مشايخ اوروحانيون دوی ته په غټو مشرکانو سره ور وپيژني تر څو لـه هغوی څخه فاصله ونيسي او دوهابيت عقيدې دحق يا ناحق دمعلومولو لپاره مراجعه ورته ونکړي .

ديني عالمان تر دې اندازې پورې مشرک ورته معرفي کوي چې په هغوی پسې لمونځ کول روا نه بولي .
په دې اساس وايي چې زموږ څخه پرته نور ټول مشرکان دي او جهاد ورسره روا دی ، هر ډول ازار رسول ورته عبادت بولي ، له دې کبله کله چې دوهابيانو ډله قوت پيدا کړي نو مسلمانان لکه کفار داسي وژني، ښځې او هلکان يې غلامان کوي او مالونه يې غنيمت ګڼي .
دمثال په ډول : کله چې محمدبن عبدالوهاب دسعوديانو درعيت امير ته لار پيدا کړه .امير دخپلي پاچاهۍ دپراخي او محمدبن عبدالوهاب دخپل مذهب دښکاره کيدو او رواج په خاطر ټول مسلمانان په قتل ورسول او پر عربستان باندي يې قبضه وکړه .
د دوی دسياست بل اړخ دادی چې : کله چې دوی له ماتي سره مخامخ سي نو خپله عقيده پريږدي او پرخپلو کړوبـانـدي انکار کوي ، بيرته اسلامي عقيده ښکاره کوي .
دغه سياست ته ورته پېښه پـه ۱۳۹۳ ق کال کي په کندهار کي رامنځ ته سوه ،دکندهار علماؤ ، مفتيانو او قاضيانو دوخت دحکومت ترسياست لاندي راوستل او ملامت يې کړل،دپنځو کالو په بنديې محکوم کړل،دڅه مودې بند تيرولو څخه وروسته يې دپورته ذکر سوي سياست له مخي ځانونه خلاص کړل.
دغه سياست دوی ته درسول الله (ص) دوخت دمنافقانو څخه ورپاته دی ځکه هغوی هم چي کله به له کفارو سره يوځای سول ويل به يې چي موږ په مسلمانانو ملنډې وهو او چي کله به له مسلمانانو سره يو ځای سول ويل به يې چي موږ ستاسي سره يو .

# وهابي څوک دی ؟؟؟

وهابيانو دخپلي عقيدې دخپرولو لپاره ځيني کتابونه ليکلي او چاپ کړي دي چي خلکو ته يې په وړيا ډول ورکوي ، همدارنګه ځينو خلکو ته د دوی دعقيدې په منلو سره نقدي پيسې ورکوي چي دغه سياست يې دانګريزانو دی .

دهندوستان ځيني علماء دابن تيميه پرقول ډېر ټينګ ولاړ دي او دده اقوالوته ډېر اعتبار ورکوي له دې کبله دهندوستان ديوبند مدرسه په وهابيت سره بد نامه سوه ، هغه علماء په لاندي ډول دي :

- اسمعيل شاه
- احمد ګنګوهي
- صديق حسن البهوپالي
- نذيراحسن
- شهدالحق
- وحيدالزمان
- عبدالجبار
- غلام خان راولپنډي
- طاهرالپشاوري

## دوهابیانو غټ مشر او پیشوا
## محمد بن عبدالوهاب النجدي

وهابیان وایي چي : موږ ته په دې خاطر وهابیان وایي ځکه چي موږ موحدین یو یعني یوازي دخدای (ج) وحدانیت منو او څرنګه چي دخدای (ج) نوم وهاب دی نو ځکه موږ هم پرخپل ځان باندي دغه نوم ایښی دی خو د دوی دغه خبره هم درواغ ده ځکه دوی دغه نوم دخپل مشرنوم ته منسوبوي .

مفتي شیخ الاسلام سید احمد بن زیني دحلان (رح) وایي چي : ما دشیخ محمد بن سلیمان الکردي (رح) المدني یوه رساله ولیده چي هغه دمحمد بن عبدالوهاب استاد ؤ هغه په خپله رساله کي محمد بن عبدالوهاب ته وایي چي : سلام پر هغه چا باندي چي هغه دهدایت تابع وي ، وروسته تر سلام زه تاته نصیحت کوم :

دخدای ج په خاطر د مسلمانانو له کفر کولو څخه دي خوله بنده کړه ، که چیري یو نفر پرغلطه لار روان وي نو لار ورته وښایاست او حق دلایل ورته ووایه ، داچي ته پر ډېروخلکو باندي دکفر تهاپه لګوې نو تاته هم دکفر نسبت کول ډېر اسانه کار دی – دردالنسیته ص ۳۹ څلورم ټوک .

دپورته ذکر سوي کتاب په ۴۳ مخ کي وايي چي:
يوه ورځ محمد بن عبدالوهاب النجدي دجمعې دلمانځه په خطبه کي داسي وويل: هر څوک چي په نبي (ص) سره توسل کوي هغه کافر دی ، دمحمد بن عبدالوهاب النجدي ورور شيخ سليمان (رح) چي ډېر لوی عالم او ښه سړی ؤ نوموړي په بدعت کي پر خپل خبيث ورور باندي رد کاوه او په هيڅ بدعت (په دين کي نوی کارپيداکول) کي يې دده متابعت نه دی کړی.
يوه ورځ شيخ سليمان خپل خبيث ورورته وويل چي: داسلام ارکان څو دي محمدبن عبدالوهاب په ځواب کي ورته وويل پنځه دي ، شيخ سليمان ورته وويل چي ستا په مذهب کي خو شپږ دي او شپږم دادی چي ستا متابعت به کوي او که يې ستا متابعت ونه کړ هغه خوستا په نظر کافر دی.
يوچا محمدبن عبدالوهاب ته وويل چي: خدای (ج) دروژې په مياشت کي هره شپه څو گناهکاران له دوزخ څخه ازادوي ؟ ده ورته وويل يولک نفره او دروژې په اخره شپه دومره نفره ازادوي لکه په ټوله مياشت کي چي يې ازاد کړي وي چي ټوله شپيته لکه کيږي، نوهغه سړي ورته وويل چي دغه کسان چي خدای (ج) يې بخښي دا خو به مسلمانان وي ؟ ابن عبد الوهاب ورته وويل چي هو ،هغه سړي ورته وويل ته خو هغه څوک مسلمانان بولې چي هغه ستا خبره مني او ته خو ددغه شمېر په اندازه خپل پيروان نه لرې، ستا پيروان تر اوسه پوري يو لک هم نه دي نو داخلک به څوک وي چي خدای ج يې بخښي ؟
کله چي شيخ سليمان دخپل خبيث ورور څخه وېرېدی چي هسي نه ديو چا پواسطه زما دمرگ توطئه جوړه کړي نو يې مدينې منورې ته هجرت

وکړ او هلته يې دده دعقيدې دغندني پر اساس يوه رساله جوړه کړه او ده ته يې ور وليږل خو بيا هم مسلمان نـه سو او خپله عقيده يې سمه نه کړه، دا ډول نورو علماؤ کرامو هم دده پـه اړه ډېري رسالې جوړي کړې او ورويې ليږلې خـو هـدايـت يې پيـدا نـه کـړ ، لانـدي ايـت شريف دهدايت دنه پيداکېدو لپاره راغلی دی :

انک لاتهدی من احببت ولکن الله يهدی من يشاء (سورة قصص ۵۲ )

ژباړه:ته هغه چاته هدايت نه سې کولای چي ستا(محمد ص)خوښه وي، ستا خدای(ج) هغه چاته هدايت کوي چي ستاد خدای(ج) خوښه وي.

يوه ورځ يو سړی چي دخپل قوم مشرؤ اوواک يې ترمحمد بن عبدالوهاب ډېرؤ ورتـه راغـی او ورتـه وې ويل: که تاته يو سړی راسي او درته ووايي چي دفلاني غره شـاته ستا دوژلو لپاره يو غټ لښکر ولاړاو راروان دی او بيـا تـه ددې موضـوع دمعلومولـو لپـاره زرکسيز هيئت هغې سيمي ته واستوې او هغه هيئت دليدني کتني وروسته درتـه ووايي چي هيڅوک هم نسته ، نو ته دهغه يوه سړي خبره منې او که دزرکسيز هيئت خبره منې ؟

ده ورته وويل چي دزرو کسانو خبره منم او دهغه يوه سړي خبره نه منم ، نو هغه سړي ورتـه ويـل چي ټـول علماء که ژوندي دي او که مړه دي ستا عقيده درواغ بولي او يوازي تـه خپله عقيده سمه بولې نو موږ دهغه ډېرو علماؤ خبره منو اوستا خبره نه منو ،په دې وخت کي محمد بن عبدالوهاب ملامت او حيران سو . سنيه ص ۴۴

# دوهابیانو ځیني کيسې

◄ یوه ورځ یوه ډله خلک درسول الله (ص) زیارت ته دزیارت کولو لپاره ولاړل نو یو سړي محمد بن عبدالوهاب ته خبر ورکړ چې یوه ډله خلک دزیارت کولو لپاره درسول الله (ص) زیارت ته راغلي دي، څرنګه چې محمد بن عبدالوهاب دومره توان نه درلود چې هغه خلک دزیارت کولو څخه منع کړي نو یې له ځانه سره وویل چې پرېږدی چې مشرکین مدینې منورې ته ولاړ سي او مسلمانان خو زموږ سره پاته دي .

◄ محمد بن عبدالوهاب خلک دفقهي ، تفسیرشریف ،احادیثو او نورو دیني کتابونو له مطالعې څخه منع کول داځکه چې په دې کي دده موخه داوه چې خلک دده په ګمراهي باندي پوه نه سي ، په دې اساس يې زيات کتابونه وسوځول.

◄ محمد بن عبدالوهاب خلک پر رسول الله (ص) باندي له درود ويلو څخه منع كول ، په خاص ډول دجمعې د شپې له درود ويلو څخه ځکه چې ده ويل چې دا بدعت دی ، يوه ورځ يوه ړانده سړي تر اذان

وروسته پر رسول الله (ص) باندي درود ووايه ، محمد بن عبدالوهاب دغه سړی له درود ويلو څخه منع نـه کـړای سـو خـو وروستـه يـې پـه شهادت ورساوه .

◀ کله کله به يې ويل چـي کتـاب يو دی او سنت يو دی ، څلور مذاهب له کومـي خـوا پکښي رامنـځ ته سول ، دا بدعت دی ، په دې کي دده موخه داوه چي ټول خلک دده متابعت وکړي او پـه گمراهـي باندي يې خبر نسي .

◀ محمد بن عبدالـوهاب بـه درسول الله (ص) د ېر تنقيض او تحقير کاوه ، پـه دې بهانـه چـي تعظيم يوازي دالله (ج) لپاره دی او بل چا ته تعظيم کول شـرک دی ، همـدارنگه بـه يـې کله کله رسـول الله (ص) تـه د (طارش) لقب استعمالاوه ، طارش پـه عـربي کـي دکتـاب راوړونکي تـه ويل کيږي ، نو دخلکو پـه نظر کي يې داسي ورکول چي رسول الله (ص) کاغذراوړونکی ؤ راغی او بيرته ولاړی او پر موږ باندي داحترام څه نه لري ، حال داچي قرآن کريم دحضرت رسول الله (ص) داحترام پـه هکله څـو ځايونه يادونه کړې ده لکه پـه لاندي آيت شريف کي :

قل ان کنتم تحبون الله فاتبعونی (سورة ال عمران ايت نمبر ۳۱ )

ژبـاړه : ته (محـمد ص) خلـکو تـه ووايـه که چيري تاسي دخدای (ج) سره محبت کوئ نوزما متابعت وکړئ چي خدای(ج) ستـاسي سره محبت وکړي .

همدارنگه پـه بل آيت شريف کي فرمايي :

وماآتکم الرسول فخذوه ومانهکم عنه فانتهوا (سورة حشر آيت نمبر ۷)

ژبـاړه : هغه شی چـي رسول الله (ص) تاسـي تـه راوړی دی هغه واخلئ او عمل ورباندي وکړئ او لـه هغه شـي څخه چـي تاسـي منع کوي نو تاسي پرهيز ورڅخه وکړئ .

## وهابي څوک دی ؟؟؟

په پورتـه آيـتونو کـي درسول الله (ص) احترام په ښکاره ټکوکي په واضح ډول قرآن کريم بـيان کـړی دی چي ټول علماء او په ځانګړي ډول مفسيرين (رح) وربـاندي پوهيږي ، دمحمدبن عبـدالوهاب ځينو تـابعينو بـه دده پـه مـخ کـي درسـول (ص) ډېـره بـې ادبـي کولـه او دی بـه ډېر وربانـدي خوشحال سو ، دبيلګي په توګه : يو سړي په يوه مجلس کـي وويـل چـي زما دغه لکړه تر رسول الله (ص) ښه ده او ګټه يـې رارسيږي ځکـه چـي پـه دې لکړه بـاندي زه مار ، لړم او نور خزندګان وژنـم او رسـول الله (ص) خو يو طارش ؤ مړ سو او ماته يې اوس هيڅ ګټه نه رسيږي .

# داهل سنت والجماعت او وهابيانو تر منځ اختلاف

داهل سنت والجماعت اووهابيانو ترمنځ په څلورو شيانو کي اختلاف دی:

◄ وهابيان وايي چي دالله (ج) څخه پرته بل چاته په عزت او درناوي سره عقيده لرل شرک دی او اهل سنت والجماعت وايي چي عزت او درناوی ځيني وخت مباح ، ځيني وخت سنت او ځنيي وخت واجب وي.

◄ وهابيان وايي انبيا(ع)، اوليا(رح) اوعلما(رح) خدای(ج)ته واسطه کول شرک (کفر) دی او اهل سنت والجماعت وايي چي داکار مباح اوسنت دی.

◄ وهابيان وايي داعقيده درلودل چي په قبر کي مړی دژوندیو خبري اوري شرک دی او اهل سنت والجماعت وايي چي داخبره سنت ده چي مړی دژوندیو خبري اوري.

◄ وهابيان وايي چي دڅلورو امامانو (امام ابوحنيفه، امام شافعي، امام احمد حنبل اوامام مالک رح)خبري منل شرک دی اواهل سنت والجماعت وايي چي د دغه څلورو مذاهبو تقليد لازمي دی او ددغه څلورو مذاهبو څخه وتل ناروا دي.

# وهابيان دمکې معظمې داميرانو دامارت په دوران کې

کله چې دهجرت پـه ۱۱۴۲ کال کـې دمکې معظمې امير سعود بن سعيد بن سعدبن زيدؤ ، پـه دې وخت کـې وهابيـانـو دبيـت الله شريف دزيارت کولو په بهانه دنـومورې امير څخه اجـازه وغوښتـه چـې په دې کې ددوی اصلي هدف دخپلو عقايـدو پـه اړه تبليغ او دغـه دبدعـت تخم پاشل وه، نومورې امير اجازه ورکړه ، پـه دې اسـاس ۳۰ نفره وهابـيان مکې شريفي ته دزيارت کولو په بهانه ستانه سول ، امير سعود دحرم شريف علماء کرام امر کړل تر څو له دوی سره د دوی دفاسـدو عقايـدو پر بطلان باندي بحث وکړي . دحرم شريف علماء کرام دبحث لپاره تيار سول .
کله چـي بحـث اومناظره پيـل سوه د دوی خبري او عقايـد بيـخي دکفر او شرک سره برابر ؤ ، پـه دې بحث کـې دوی دمکې شـريفي دقاضی القضات په مخکې په قرآني ايتونو اونبوي احاديـثوسـره ملامـت سول ، نو شريف سعود ته يې د دوی دملامتي خبر ورکړ او ورتـه ويې ويل چې د دوی دکفر اعلان دې وسي اودوی دې بنـديـان کړل سـي چې همداسي ورسره وسوه،

# وهابي څوک دی ؟؟؟

کله چي د درعيې امير تـه ددې موضوع پـه اړه معلومات وسو ، نو داتوان يې نه درلـود چـي دشـريف سعود سره مقابله وکړي او خپل بنديان خوشي کړي ،داخبره پته پاتـه سـوه ترڅـو شـريف سعود پـه ۱۱۲۵ کال کي وفات سو او دده ورور ساعد بن سعيد ته امارت وسپارل سو .

وهابيانو بيا دموقع څخه په استفادې سره دنـوي امير څخه دحج دفـريضې داداء کولو پـه نيـت مکې شـريفي ته دتللو اجـازه وغوښته ، نوموړي امير دخپل ورور پر خلاف دوی ته اجـازه ورنکړه ، تـرهغه پـوري چي دنوموړي امير امـارت برحـال ؤ دوی مکې تـه دتګ اجازه نه درلوده ترڅو ساعد بن سعيد دهجرت په ۱۱۸۴ کال کي دفــات سو او دمکې شريفي امارت دده بل ورور شريف احمد بن سعيد ته وسپارل سو .

وهابيانو بيا دتېر په څېر دبيت الله شريف دزيـارت کـولو اجـازه دشريف احمد څخه وغوښتل هغه دلومړي امير په څېر اجازه ورکړه ، کله چي دوی اجازه تر لاسه کړه نو ددرعيې امير محمدبن سعود دوهابـيانو يوه قوي ډله جوړه او مکې معظمې ته يې واستول . دغه امير هـم دلومړي امير په څېر دوهابيانـو دعقايــدو دمعلومولو لپاره دحـــرم شريف علماء کرام په کار وګومارل تر څو د دوی دعقايدو امتحان واخلي او موضوع ځان ته روښانه کړي . علماء کرامو چـي کله دموضوع اړونـد پوښتـني ورڅخه وکړې نو معلومه سوه چي دا خلــک ګمراهــان دي ، دې امير امـر وکړ او دغه ټوله خلک يې له مکې شريف څخه وشړل .

کله چي دهجرت په ۱۱۸۲ کال سرور بن مساعـد د خپل اکا څخه دامارت واک په زوره ترلاسه کړ دوهابيانو ډلي بيا دنوي امير څخه دبيت الله شريف دزيارت کولو اجازه وغوښته ،سرور بن مساعد وهـابيانـو ته په دې شرط

اجازه ورکړه چي دوی به خراج ورکوي لکه دعجمو رافضيان چي په کومه اندازه خراج ورکوي دوی به تر هغوی سل اسان اضافه ورکوي .
کله چي په ۱۲۰۲ کال کي سرور بن مساعد وفات سو اوامارت دده ورور شريف غالب ته وسپارل سو ،وهابيانو بيا مکې ته دتگ پيشنهاد وکړ ، ددې په ځواب کي شريف غالب يوازي داچي اجازه يې ورنه کړه بلکي د دوی دمقابلې لپاره يې يو جنگي لښکرهم ورته برابر کړ ،دهجرت په ۱۲۰۵ کال څخه تر ۱۲۲۰ کال پوري (۱۵کاله) دوهابيانو او دمکې شريف دمسلمانانو تر منځ جنگ دوام پيدا کړ ، ددې ۱۵ کلن جنگ په جريان کي ډيري پيښي رامنځ ته سوې چي په لنډه توگه به يې دلته يادونه وکړو .
مکې ته تر داخليدو دمخه دوهابيانو پادشاهي ډېر پراخوالی موندلی ؤ ، او لا د مشرق پر زمين ، دلاحاء ، ولايت ، بغداد ، بصره ، الحرار ، الحينوف ذوات النخل ، الحربيه ، انواع الجهينيه او شام سيمي يې تر خپل تسلط لاندي راوستلې او هغه عرب چي دشام او بغداد په منځ کي ؤ ټول محکوم سول .
دهجرت په ۱۲۱۷ کال يې پر طايف باندي حمله وکړه ، دطايف پر مسلمانانو باندي يې دومره ظلمونه وکړل چي ددوی په تاريخ کي چادومره ظلمونه نه وه وړباندي کړي ،په ښارونو اوبازارونو کي يې پر نر ، ښځه ، کشر او مشر باندي قتل عام شروع کړ . دښځو پر ځيگر باندي يې دهغوی کوچنيان ور حلال کړل ، داسلامي فقهي ، حديثو اوتفاسيرو کتابونه يې دخلکو او اسونو تر پښولاندي پايمال کړل .
دخلکو مالونه يې لوټ او تالان کړل ، ښځي يې دکفارو دښځو په څېر مينځياني کړلې داپيښه داسي يو زړه بوږنوونکې وه چي په ټول طايف

کي په شمار درې سوه مسلمانان پاته نه سول او خلک د دوی سخت زړه توب ته حیران پاته سول . خلاصة المرام صـ ۲۷۳ دوهم ټوک

دطایف لـه جنـګ څخه وروسـته دهجرت په ۱۲۱۸ کال وهابیانو دمکې دحرم په لور دجنګ تکل وکړ ،دمکې امیر لـه دوی سره دجنګ کولو توان نه درلود اوجدې تـه پـه تیښته ولاړ، دمکې خلـکو دخپـلي ویري له کبله دوهابیانو دلښکرمخ تـه ورغلل او دامـن غوښتـنه یـې ورڅخه وکړل او هغوی هـم د دوی غوښتـنه ومنل او بېله کومي جګړې کولو څخه وهابیان مکې ته ننوتل اوترخپل واک لاندي یې راوستل .

له څو ورځو وروسته یې دجدې پـه لوري دجنګ لپاره تیاری ونیو خوهلته بریالي نه سول او بیرته مکې تـه راستانه سول اوددې ښاردساتلو لپاره یې یوه ډله فوځ په مکه کي پرېښود اوخپـله دوی خپـل اصلي ټاټوبي نجد ته ولاړل .

دهجرت پـه ۱۲۱۸ کال شریف غـالب دجـدې دامیر پـه مرستـه دیو لوی لښکر پواسطه پر مکې بـانـدي حمله وکړه او دمکې ښار یې دوهابیانو له لاسه وایست . دوهابیانو ځیني کسان وتښتېدل او ځیني یې مړه سول خو د دوی ترمنځ دجنګ موضوع دهجرت تر( ۱۲۲۰) کا ل پوري جاري وه .

خلاصة المرام مفتي الحرمین احمد بن زیني

دهجرت په ۱۲۲۰ کال وهابیانـو یوځـل بیا مکه محاصره کړه او پر خلکو بانـدي سخت تکلـیفونه راوستـل ، دمکې خلکو دلوږي له کبله دمردارو سپو غوښي خوړلې، پـه دې وخت کي شریف غالب مجبورسو اودوهابیانو سره یې صلح وکړه او بېـله کـوم مقاومت څخه دمکې ښار ته ننوتل ددوی

واکمني تر ۱۲۲۷ کال پورې دوام وکړ، واکمني یې دمکې ترښاره پورې محدوده نه وه بلکې ټول سعودي عربستان د دوی ترواکمنی لاندې ؤ . په دې وخت کې مسلمانان ډیر زیات په تکلیف ووحتی خپله مسلماني یې لا هم په‌ته ساتله، دوهابیانو سلطنت پرسعودي عربستان باندې ترهغه دوام وکړ ترڅو دترکانو لوی پاچا سلطان محمود خپل مشاور وزیر او دمصر والي محمد علي ته امروکړچې دوهابیانوسره جنګ وکړي، نوموړي یو لوی لښکر تیاراوحمله یې وربا ندې وکړه، دحرمینو شریفینو مځکه یې له دوی څخه پاکه کړه، وهابیان خپل اصلي ټاټوبي ته وتښتېدل، نوموړي خپل فوځ ته امر وکړاوهلته وریسې ورغلل هلته یې هم سخته ماته ورکړه او دوهابي نوم بیخي ورک شو .

په دې اساس مکه بیرته دمسلمانانو لاس ته ورغله او دغه مځکه د دوی له فساد او فتنې څخه پاکه سوه .

# دوهابیت دتبلیغ راز

اوس سوال دلته پیدا کیږي چې سره له دې چې خلورو وارومذاهبو دوهابیت طریقې ردکړي دي اوپه دې اړه یې ډیرزیات کتابونه لیکلي دي خوبیاهم ځیني خلک دوهابیت طریقې پیروي کوي اوډیر په کلکه ورسره ولاړ وي او لانورهم هڅه کوي چې دوهابیت طریقې پیروان ډیر سي اوهر څوک چې یو ځل ددغه طریقې پیروي وکړي بیا دهغه بیرته را اړول ډیر ګران کار وي .

په دې اړه څو دلایل موجود دي او هغه په لاندي ډول دي :

◄ وهابیان دخپل ځان پرته نوړ ټول خلک مشرکان بولي ځکه نو د دوی پیروان نه غواړي چې دیودیني عالم سره کښیني او دموضوع په هکله خبري ورسره وکړي .

◄ دقرآن کریم پرته نورټول کتابونه دوهابیت دطریقې له نظره درواغ دي ځکه پیروان یې نه غواړي چې عقیدوي او فقهي کتابونه مطالعه کړي .

◄ دامت اجماع او دمجتهدینو قیاس ټول هیڅ بولي او عمل نه په کوي.

◄ دهیڅ یو عالم چي د دوی دمسلک څخه نه وي خبروته غوږ نه نیسي حتی لمونځ هم نه پسې کوي او مساجدوته یې نه ورځي.

دپورته صفاتو لرونکی یو شخص هیڅکله دخپلي عقیدې څخه څوک نه سي اړولای ، همدغه علت دی چې که یوڅوک دوهابیت طریقې پیروي

# وهابي څوک دی ؟؟؟

غـوره کړي نو بـيا يـې بيرتـه رااړول او يا هم دلايل ورته وړاندي کول بې گټي کار دی ، دپورته خبرو پـه نظر کي نيـولو سره او دخپلو خبرو داثبات لپاره يوه واقعه درته په لاندي ډول بيانوم:

دکندهار ښار ته نژدې دفيروز کلاچې په نوم يوه سيمه ودانه ده چي څو تنه وهابيان پکښي اوسېـدل چــي يو تــن له دوی څخه دژړ ملاغـيات په نوم شهرت درلود چي اوس مړسـوی دی،ددوی مشـري يــې په غاړه لرله ،په دوی کي يو تن حاجي ؤ چي دوهابيت له عقيدې څخه يې لاس واخيست او ديوه مجلس پــه تـرڅ کي يې دوهابيت عقايـد وقصې کــولې،دلتـه دنوموړي حاجي دخولې بيان په لنډ ډول را اخلو، دی وايي:

کله چي زه وهابــي وم نــو چي بازارته به راغلم دا ټول خلک به زما په فکر مشـرکان راتـه ښکاره کېدل ، له دې کبله به مي هيچاته سلام نه وايه ، کله چي به مي ديني عالمان وليدل نو ترهندوانو لاهم بد راته ايسېدل هيڅ مي يې مخ ته نـه کتل ،دغه مفکوره موږ ته ژړ ملا غياث راښوولې وه،کله کله به مو پوښتنه ورڅخه وکړه چي دکندهار ښار ټول عالمان ستاسره مخالفت لري يوازي ستـا عقيده څنگه پرحق ده او د دوی عقيده باطله ده ؟

په څواب کـي يې راتـــه ويل چـــي دآنحــضرت (ص) پـه زمانه کي دټول عربستان کفاردده مبارک مخالـف وه سـره لـه دې چي عليه السلام مبارک پر حق ؤ .

دوهابيانو عقيده څلـور واړومذاهبو(حنفي، شافعي، حنبلي او مالکي) رد کــړې ده او پــه دې اړه دڅلورو سره مـذاهبو عالمانــو په زرگونو کتابونه ليکلي دي او دټولو په اتفاق باندي دغه عقيده باطله پېژندل سوېده .

موږدلته دځینو کتابونو یادونه کوو چي دوهابیانو عقیده یې رد کړې ده :

◄◄ سلیمان الکردي .

◄◄ الصواعق الاهیة ـ شیخ سلیمان بن عبدالوهاب (ورورېې) دی.

◄◄ تجرید سیف الجهاد لمدعي الاجتهاد ـ عبدالله بن عبداللطیف الشافعي ( استاد یې ) دی .

◄◄ رد مختار ـ علامه ابن عابدین شامي .

◄◄ سیف المقلدین ـ علامه عبدالجلیل .

◄◄ التوسل باالنبی وجهلة الوهابین ـ حامد مذروق .

◄◄ الصواعق والرعود ـ علامه عفیف الدین عبدالله بن داود الحنبلي.

◄◄ تهیکو المقلدین بمن ادعی تجدید الدین ـ المحقق محمدبن عبدالرحمن بن عفالق الحنبلي .

◄◄ الصدام الهندي فی رد معتقد النجدي ـ شیخ عطاء المکي .

◄◄ السیف الباترلعتق المنکر علی الاکابر ـ السید علوي الحداد .

◄◄ الانتصارالاولیاء الابرار ـ العلامه الطاهر سنبل الحنفي الطائفي.

◄◄ الفجر الصدیق فی الرد علی المنکری التواسل والخوارج ـ علامه عقداق ـ حضرت جمیل افتدي صدیق الزهاوي .

◄◄ ضیاء الصدورالرد منکر التوسل باهل القبور ـ حضرت میان ظاهر شاه ابن عبدالعظیم .

◄◄ خلاصة المرام ـ شیخ السلام سید احمد بن زیني دحلان (رح) .

◄◄ او داسي نور.....

# پرابن تیمیه باندي دڅلورو مذاهبو رد

۱- امام صدرالدین بن الوکیل چي په ابن واصل الشافعي باندي مشهورؤ
۲_ امام ابوحیان (رح).
۳- امام عزالدین بن جماعه .
۴- امام کمال الدین الزملکاني الشافعي .
۵- امام کبیر تقی الدین السبکي الشافعي .
۶- امام قسطلاني .
۷- حافظ ابن حجر عسقلاني .
۸- امام شهاب الدین الخفاجي الحنفي .
۹- امام علی قاري الحنفي .
۱۰ -- علامه خلیل بن اسحق المالکي .
۱۱ – اوداسي نور.....

دابن تیمیه مشهور شاګرد ابن القسیم محمدبن عبدالوهاب النجدي ؤ چي له ډېر وخت وروسته یې دخپل استاد عقیدې ته رواج ورکړ او په دې اړه یې ډېر کتابونه ولیکل او چاپ یې کړل چي دسعودي عربستان دحکومت په مرسته خلکو ته ورسول سول ، په دې بهانه چي داکتابونه دالله (ج) لپاره وقف دي او بیه یې روانه ده .

په دې اساس په هر اسلامي هیواد کي دوهابیت دعقیدې اور بل سو تر دې چي زموږ ګران هیواد افغانستان ته هم دادی راورسید .

ددې کتاب په راټولولو کي له لاندي کتابونو څخه ګټه اخيستل سوې ده :

١ـ نقيب الرسائل ـ تصنيف الحاج مولوي عبيد الله نقيبي (رح) تهركاريزي
٢ـ البصاير لمنكرى التوسل باهل المقابر ـ تاليف : مولانا حمد الله جان (داجوي) .
٣ـ سيف الكندهاري ـ تصنيف : مفسير القرآن الحاج مولوي عبيد الله سليمان خيلي كندهاري ايوبي دام فيضه .
٤ـ برهان الوطن فى رد الوهابية .

دجامع المنقول والمعقول الحاج مولوي فیض محمد (ابوالفیض) دامت بـــرکاته
تقریظ کټ مټ ددوی په قلم لیکلـــی رانقل سو.

انقیادي

۱۳۸۸/٤/۲۰

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لاهله والصلاة علی اهلها - اما بعد.

کوم څه لیکل چه محترم مولوی محمد قاسم "انقیادی"
د خپل کوښښ بشو نو ثمره چه باعث د اجر عظیم به وی.
زموږ تر نظارت لاندی مطالعه کړی سوه زما په آند
کوم شرعی خدشه نه پکښی لیدل کیږی او په دی
کوچنی مجموعه کښی هغه څه چه د اسلام د مبین
دین د دښمنانو توطئی او دسیسی پکښی بیثی دی
راسپړل سوی دی او اسلامی ټولنی ته یی نوع
هدایت او وینښتیا ده

له محترم مولوی صاحب څخه هیله مند یم چه خپله نستری
کښی ونلی هلی ځلی باید تل تر تله په پوره میړانه سرته
همیشه و نباتی، څنگه چی دا د هر مسلمان دینی وجیبه ده.

والسلام الحاج مولوی فیض محمد "ابوالفیض"

حفظ الله

**دښاغلي ارشادمحمود او ښاغلي خليل احمد**

**څخه کور ودان وي چې ددې کتاب دجملو په سمون او دکمپوز او ډيزاين په برخه کې يې په ورين تندي مرسته راسره وکړه ، زما اوږې يې راسپکې کړې او کتاب يې دچاپ تر بريده ورساوه .**

**يو ځل بيا دټولو ملګرو څخه مننه کوم .**

په درنښت

مولوي محمد قاسم (( انقيادي ))